تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغۃ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

اولہ حصہ

ناشر

مدرسة حديقة الأحناف

بسم اللّٰہ الرّحمٰن الرّحیم

# مسئلة ایصال الثواب للأموات



از تشریحات النابغه

# مسئلة ايصال الثواب للأموات :

## التحقيق في ايصال الثواب للأموات :

أعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِي صُحُفِ مُوسَىٰ ○ وَإِبْرَاهِيمَ الَّذِي وَفَّىٰ ○ أَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ○ وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾. (سورة النجم آيت : ٣٦-٣٩)

بله مسئله متنازعه بيننا وبين الخصم هغه مسئله د ايصال الثواب الى الاموات ده مړو پسې صدقات كول او دارنګې نفلي روژه حج يا هر هغه كار چې ذي اجر او ذي ثواب وي د هغې ثواب ببنل مرده ته په نزد د جماهيرو اهلسنت والجماعة باندې جائز بلكې مندوب دي هر ذي اجر كار كه هغه عتق د غلامانو وي دا امر ذي اجر دي كولې شي چې يو سړي د مرده لـه طرف نه عتق وكړي او د هغې ثواب مرده ته وبخښي دغه شان تلاوت په صورت د ختم وي كه انفرادي وي ذي اجر دي ثواب يې مرده ته او بخښي دغه شان حج دي نفلي او دارنګې صدقات دي دُعاء ګانې دي هر كار د خير چې ذي اجر وي د مرده نه كول جائز دي په نزد د جمهورو اهلسنت والجماعة باندې.

دا نن صبا چې څو مره مخالفين د صدقاتو د خيراتونو منكرين دي خلكو ته ذهن كې دا اچوي چې مونږه د ايصال ثواب منكر نه يو مونږ خو فقط د اولې دويمې دريمې ورځې د خيرات منكر يو او دا دوكه وركول دي اهلسنت لره در حقيقت دوي په عقيده د اعتزال باندې دي چې معتزله د ايصال الثواب الى الاموات منكر دي بالكل ځكه چې د مرده پسې دُعاء چې كيږي د هغې هم دوي مخالفت كوي په دغو ورځو كې نه وي وروسته كال مياشت بعد تلاوت ختم كيږي مرده پسې ثواب بخښل كيږي د هغې هم دوي مخالف دي نو هر كارِ خير مړي پسې چې څوك كوي دوي هغې ته جائز نه وايي دې نه دا معلومه ده چې دوي د ايصال الثواب منكرين دي.

بل معتزله چې د ايصال الثواب الى الاموات منكرين دي د هغوي داقوى د اَدِلوو نه يو ايات د نص قرآني نه دي او بل نص د حديث دي نص قرآني نه استدلال معتزله چې كوي هغه دا ايات نه كوي :

﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ نشته انسان ته مګر هغه چې ده سعي کړې وي .
او د نص د حديث نه چې معتزله استدلال کوي هغه : اذا مات الانسان انقطع عنه عمله الا من ثلاثة .

دغه ايات او دغه حديث له اقوی اَدِلو د معتزلو نه دي منکرين د ايصال الثواب چې هر جماعت دي دوي چې کله هم د ايصال الثواب په رد باندې شروع کوي نو استدلال کې دغه ايات او دغه حديث پيش کوي نو مسئله د ايصال الثواب الی الاموات دا د اسې جزيه مه ګڼې چې خيرات مستحب دي که څوک يې کوي او که نه يې کوي دا خو يقيني خبره ده چې د مستحب عمل په کولو اجر دي او په نه کولو کې څه ذم نشته يو کول نه کول دي بل منل نه منل دي .

په دې کې فرق دي خيرات ومنه چې جائز عمل دي بيا يې مه کوه نو يو اختلاف د بخلاء او سخيانو دي بل اختلاف د اهلسنت او معتزلو دي دا فرق لري سخيان چې دي خيرات کوي هم او مني يې هم بخلاء چې کوم دي خيرات مني خو کوي يې نه او بل اهلسنت او معتزله دي اهلسنت خيرات او صدقات جائز ګڼي معتزله يې جائز نه ګڼي اوس دلته دوي خيراتونو او صدقو ته جائز نه وايي کوي خو يې هسې هم نه نو دا په دې عقيده کې معتزلو پسې تللې .

د شرح عقائد په متن کې راغلي :

دُعاء الاحياء للاموات وصدقتهم نفع لهم عند اهل السنة خلاف للمعتزلة .

ژوندي چې د مړو پسې دُعا کوي يا صدقات کوي دې کې نفع شته د امسلک د اهلسنت والجماعة دي مخالف په دې کې معتزله دي وروسته به حوالې راشي بدر الدين عيني هم دا ذکر کړي چې دا مذهب د اهلسنت والجماعت دي او مخالف په کې معتزله دي ، مراقي الفلاح هم دا ذکر کړي چې داد اهلسنت والجماعت رايه ده .

مخالفين معتزله دي او استدلال معتزلو کړې دې آيت نه : ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ دا استدلال د معتزلو دي .

دلته تاسو يو فرق وپيژني هغه دا چې يو نيابت دي عن الاموات او عن الغير او بل اثابت دي الى الاموات كول د عباداتو له مړو نه دوه صورته لري نيابتاً و ايصاباً .

يو سړي د بل چا نه عبادت كوي په نيت د نيابت سره چې هغه نه وي كړې فريضه پرې پاتې وي دې په كې نائب جوړيږي ، بل يو سړي دي چې هغه د غير نه يو عبادت كوي اثابتاً په هغه څه لازم نه وه هغه باندې فريضه نه وي پاتې دې يو عمل كوي ثواب هغه ته بخښي .

د انابت مسئله داده چې د احنافو فقه د انابت په صورت كې اعمال ذي اجر تقسيموي ثلاثة اقسام لره څه عبادات بدني محض ، څه عبادات مالي محض څه مشترک بينهما . مثال د بدني محض صلواة دي او صوم دي مثال د مالي محض زكواة او صدقه فطر مثال د مشترک بينهما حج دي احناف وايي چې د مړي نه يا د غير نه نيابتاً عمل كول .

نو په عباداتو بدنيو كې احناف نيابت جائز نه ګڼي مثال يو سړي وفات شي او لمونځونه پرې پاتې دي نو دغه فوت شوي سړي نه دده اقرباء نيابتاً لمونځونه نه شي كولې يا پرې روژې د رمضان پاتې وي نو روژه ترې نه نه شي نيولې بلكې د هغې بدل كې به فديه وركوي دغه ځاى كې د جمهورو دا مذهب دي چې د روژې په باب كې به د نيابت په صورت كې فديه وركولې شي خو روژه ترې نه نه شي نيولې .

دظواهرو او دامام احمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ دا رايه ده چې په روژه كې هم نيابت كيدې شي او د ((صام عنه وليه)) د حديث نه استدلال كوي چې څوک مړ شي او په هغه صوم وي نو ((صام عنه)) جمهور علماء نصوصو د كفارې ته ذهاب كوي چې په صورت د كمزورې د دغه رجل كې چې دده دا عبادت نه شو كولې او دې حيات وه نو ﴿وَعَلَى ٱلَّذِينَ يُطِيقُونَهُۥ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ نص قرآني نه ثابت دي .

نو چې كله سړي مړ شو نو دا خو لا پسې معذور شو نو هلته هم حكم دا دی : ﴿فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ هغه بله جزيه شوه اختلافي چې د صوم په باره كې به ((صام عنه وليه)) وي او كه فديه به ترې وركوي جمهور قول كوي په كفاره باندې امام احمد او ظواهر قول كوي په صوم باندې په مانځه كې بيا ټول متفق دي چې مونځ ترې نه نه شي كولې دا عبادات بدني دي نو چې دا عبادت بدني دي هغه هم عبادت بدني دي .

دریم عبادت مالي محض دي هلته نیابت مطلقاً جائز دي باتفاق العلماء مثلاً یو څوک مړ شي زکواة پرې پاتې دي دده د مال نه دده وارث نیابت په زکواة کې کولې شي یا صدقه فطر.

دریم مشترک بینهما دي په مشترک بینهما کې احناف وایي چې نیابت جائز دي په صورت د توصیې او امر کې او جائز نه دي په صورت د غیر توصیه او غیر امر کې لکه حج سړي کمزورې شو امریې وکړو وصیت یې وکړو چې لاړ شه زما پرځای حج وکړه نو د هغه نه حج کیدې شي او که وصیت یې چیرته نه وي کړي نو په دې صورت کې بیا نه شي کیدلې د نیابت په صورت کې دا مسئله د نیابت شوه.

هر چې مسئله د اثابت ده په اثابت کې که هغه عبادت بدني وي لکه صوم یا صلوات یا مالي وي نفلي خیراتونه کوي مال ورکوي چا ته خیرات کوي او یا لساني عبادات بدني ذکري تلاوت راغې جمله کارِ خیر په کې راغې.

او یا مشترک بینهما چې حج او عمره ده نو دا اثاباً د مړو نه دا مطلقاً په نزد د اهلسنت او عند الاحناف جائز دي دا تفصیل مې دې د پاره وکړو چې هسې نه د فقه په کوم عبارت دو که شي یو عبارت مخې ته درته راشي په هغې کې زمونږ فقهاو دا ویلې دي چې د مړي نه مونځ نه شي کیدلې روژه نه شي نیول کیدلې دا الفاظ زمونږ په فقه کې شته دي نو بیا که تاسو فرق د نیابت او اثابت ونه کړي هسې نه چې د فقیه دا قول حمل کړي په دې چې ګنې د خیرات بخښلو د روژې نیولو د ایصابت په نیت به ناجائز وي نه هغه قول به هغوي نیاباً کړې وي چې روژه کې نائب نه شي جوړیدلې په مانځه کې نائب نه شي جوړیدلې.

جمهور علماء مطلقاً ټول جائز ګڼي په اهلسنت کې فقط یو امام چې امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ دي هغه په مسئله د قراءت کې هغه د جمهورو مخالف دي وایي د مړو پسې د قراءت ثواب بخښل مخالف دي وایي نص به ورته نه وه موجود په دې په دغه وجه به یې قول کړې وي لیکن متأخرین د مذهب دده او بعضې عمده محققین د مذهب دده لکه امام نووي رَحِمَهُ اللّٰهُ چې شافعي المذهب دي خو هغه هم طرف د جمهورو ته ترجیح ورکوي د تلاوت ثواب مړو پسې بخښل جائز ګڼي.

استدلال د ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ نه چې منکرین کوي د هغې نه مفسرینو اته

جوابونه کوي په دغه ایات باندې که قرطبي وګوري هم یې دا جوابونه ذکر کړې دي روح المعاني هم دا جوابونه ذکر کړې دي او زیات تفصیل چې کړي په دغه ایات باندې قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللهُ په تفسیر مظهري کې کړې دي هغه جمله نصوص د حج او عمرې د صوم او د دعاء، د خیرات او تلاوت چې څومره نصوص دي په دغه ځای باندې قاضي صاحب جمعه کړې دي.

نو تفسیر مظهري چې په دغه ایات وکتل شي نو ډیرو کتابونو ته به ستاسو ضرورت پاتې نه شي او دمه به درکړي بدر الدین عیني رَحِمَهُ اللهُ عمدة القاري شرح د صحیح البخاري جلد ۴ صفحه ۴۹۹ کې اعتراض ذکر کوي که ته اعتراض کوي چې: قال الله تعالی ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ دې نه مخکې دا ذکر کړې دي چې داد اهلسنت رایه ده چې دا ثوابونه مړو ته رسیږي نو دا ایات دلیل شو عَلٰى عَدَمِ وُصُوْلِ الثواب القرآن للمیت دلته شوافعو ته جواب ورکوي که یو شافعي المذهب دغه ایات نه استدلال کوي: قلت، زه جواب ورکوم.

اختلف العلماء في هذه الايات على ثمانية اقوال احدهما: یو قول دادی:

اَنَّهَا مَنْسُوْخَةٌ. دا ایات منسوخ دي قائل دډې قول عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي، ناسخ ددې لپاره د سورة الطور آیت نمبر (۲۱) دي:

﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا أَلَتْنَاهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَيْءٍ﴾.

هغه کسان چې ایمان یې راوړو اتباع وکړي اولاد ددوي په ایمان کې پیوست به کړو دوي پسې اولاد ددوي کم به نه کړو د اعمالو ددوي نه څه شي لره.

دغه ایات کریمه په دې دال دي چې د بچو اعمال د پلار عمل نامه کې اچولې کیږي او د بچو د عمل په وجه باندې دا پلار او اولاد په شریکه جنت ته دننه کیږي نو د غیر چې ولد دې د پلار عمل نامې ته نفعه ورکړې ده او ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ ددې په ضد راځي نو ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب کوي:

ادخل الاباء الجنة بصلاح الابناء.

امام قرطبي رَحِمَهُ اللهُ وايي :

قاله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. دا قول دا چې منسوخ دي هغه ورته ناسخ دي داد ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دي .

خو دومره اعتراض کولې شي چې ايات اول : ﴿ وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ﴾ دا مؤخر دي او ايات د ﴿ وَالَّذِينَ آمَنُوا ﴾ مقدم دي نو هغه دې لره ناسخ څنګه کرځوي دا دې هغې لره ناسخ شي .

د هغې جواب هم مفسرينو کړې دغه ځای کې چې يو ترتيب د مصحف عثماني دي بل ترتيب نزولي دي په نزول کې هغه ايات مقدم دي دا ترې مؤخر دي .

دويم جواب :

انها خاصة بقوم ابراهيم وموسى عَلَيْهِمَا السَّلَامُ واما هذه الامة .

هر چې دا امت دي .

فلهم ما سعوا وما سعى لهم غيرهم سعالهم غيرهم . دې امت ته دا خصوصيت دي چې دوي ته د خپلو اعمالو اجر هم دي او د غير د اعمالو اجر هم شته دا ايات مختص دي تر قوم د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ او موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ پورې .

دا قول د عکرمة مولى ابن عباس دي هغه ايات که مخکې وروسته ولوستلې شي خپله معلوميږي .

﴿أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِي صُحُفِ مُوسَىٰ ۝ وَإِبْرَاهِيمَ الَّذِي وَفَّىٰ﴾ دا خلک نه دي آګاه په هغه احکامو چې په صحيفو د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ کې وه په صحيفو د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ کې وه هغه احکام دا وه :

﴿أَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۝ وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ نو داد هغې صحيفو حکم دي .

دريم جواب دا کوي :

المراد بالانسان ههنا الكافر قاله الربيع بن انس . دا قول د ربيع بن انس دي .

وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ اما المؤمن فله ما سَعَىٰ وما سُعي لها . که دا اعتراض څوک وکړي چې انسان خو عام مراد دي کافر څنګه ترې اخلي دا خو ډیر ځل ذکر د عام مراد ترې خاص قرآن کریم نشته . هل اتی علی الانسان حین من الدهر لم یکن شیئاً مذکوراً ، راغلې وه انسان بانديې یو وخت ذکر د انسان دي مراد ترې آدم عَلَیْهِ السَّلَامُ دي د بعضې مفسرینو په قول .

څلورم جواب :

وان لیس للانسان ما سعی من طریق العدل فاما من باب الفضل فجائز وان لیس للانسان ماسعی بطریق العدل ولهم ما سعوا وما سُعِيَ لهم بطریق الفضل .

عدل دادی چې د غیر د اعمالو ثواب ور ونه رسوي څه د عدل خلاف نه ده دا چې ورسوي يې دا یې فضل دي په دې امت بانديې مثلاً یو سړي مړ شي د هغه پس مانده ګانو هغه پسې خیراتونه وکړل او هغه ونه بخښل شو دې ته څوک ظلم نه شي ویلې چې دا خالق ظلم کړې دي څکه دنیا کې وخت ورکړې وه دا چې بیا یې هم ور رسوي دې امت ته د نصوصو نه ثابته ده بطریق الفضل دا احسان کوي . دا قول د حسین بن فضل دي .

پنځم جواب : وان لیس للانسان ما سعی په معنی د ما نوی سره دي :

قاله ابوبکر الوراق : بیا خو بالکل دا مسئله دې باب نه خارج شوه .

لیس للانسان الا ما نوی نشته انسان ته مګر خپل نیت دا مسئله نه چیري چې ګنې خپل عمل شته او د بل نشته . سعی په معنی د نوی بانديې دا قول د ابوبکر وراق دي .

شپږم جواب :

لیس للکافر من الخیر الا ما عمله في الدنیا فیثاب علیه في الدنیا . وایي دا ایات کریمه په حق د کافر کې ده او په عمل خیر دده کې ده چې رب کریم هر خیر والا ته خیر ورکوي خو هر چې مؤمن دي د خیر بدله دلته هم ورکوي هلته یې هم ورکوي ، هر چې کافر دي لیس له الا ما سعی بس د هغه کار خیر بدله دلته ورکړي کافر هم چې څا سره څه ښه وکړي دلته دنیا کې ورته بدله ورکړي هلته بیا ورته څه نشته داد ثعلبي قول شو .

اوم جواب : لام په الانسان کې په معنی د علی باندې دي :

ان اللام في الانسان بمعنى على تقديره ليس على الانسان الا ما سعى ، نو على د ضرر لپاره وي د خير لپاره نه شو د بل چا گناه په ده نه باريږي .

اتم جواب :

انه ليس له الا سعيه غير ان الاسباب مختلفة . زه وايي تسليم کوم چې د بل چا عمل ورته نه رسيږي خو دا اسباب مختلف دي .

فتارة يكون سعيه في تحصيل الشيء بنفسه وتارةً يكون سعيه في تحصيل سببه مثل سعيه في تحصيل قراءت ولد يترحم عليه . دغه بچي چې ده پسې تلاوت کوي دغه بچي دا تلاوت ته چا جوړ کړې وه دا اول نه ده کوشش کړې وه چې دا به قاري کوم چې بيا به ما پسې تلاوت کوي وايي دا دده خپله سعي ده که دده دا سعي نه وي کړې نو هغه چيرته قاري کيده او چيرته يې تلاوت کولو .

وصديق يستغفر له . نو داد انډيوال کړې وي کنه ګنې زيات خلک شته چې خپلو اقاربو پسې دُعا نه کوي او چې ده پسې کوي نو داده ورسره ښه وخت تير کړې وي او ښه دوست يې جوړ شوې وي . وتارةً يسعى في خدمة الدين والعبادة فيكتسب محبة اهل الدين فيكون ذلك سبباً حصل بسعيه . دا ټول دده په سعي شوې وي .

داد ان ليس للانسان ما سعى نه مفسرين په دغه ځاى ټول دغه جوابونه کوي چونکې ظاهر ددې نص د اهلسنت د اصل خلاف دي د اهلسنتو په اصولو کې دا راغلل په عقائدو کې دا راغلل چې دُعاء صداقات تلاوتونه دا نفعه رسوي ظاهر د نص ددې خلاف راځي اصول د اهلسنتو لکه د قرآن کريم مقابله کې راتللې شي هغه خو خلکو ته عقيده بنايي نو عقيده څنګه د قرآن مخالفه شوه نو ددې وجې نه علماء مجبور شول ددې ايات کريمه جوابونه دا نه دي بلکې صحيح محمل لټول دي چې تر څو تعارض د ايات ورک شي د اصل د اهلسنت سره .

مونږ ددې قائل يو چې ترتيب وار تلاوتونه ، صوم ، صدقه ، حج او عتق دُعاء دا ټول مړي ته نفع ورکوي .

اول : الدعاء ينفع الميت دا مسئله اتفاقي ده حتی چې خصم هم په دې قائل دي چې دُعاء مړي ته نفع ورکوي .

عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ۴ صفحه ۴۹۷ :

ولكن اجمع العلماء على ان الدعاء ينفعهم ويصلهم ثوابه .

په دې د علماو اجماع ده چې دُعاء مړي ته نفع ورکوي .

لقوله تعالى : ﴿وَالَّذِينَ جَاءُوا مِن بَعْدِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ﴾ (سورة الحشر آيت : ۵۹)

دا تعريف د مؤمنانو راغلي چې په حق د سابقينو کې د مغفرت دعاء غواړي .

وغير ذلك من الآيات وبالاحاديث المشهورة منها قوله : اللهم اغفر لاهل بقيع الغرقد نبي عليه السلام دعاء کوي .

ومنها قوله اللهم اغفر لحينا وميتنا وغير ذلك . دا ټول ادله ددې دي .

چونکې مسئله اتفاقي ده نو مونږ پرې ډير بحث نه کوو ، معتزلوو کې څه غلاط او سر سخته تير شوي دي چې هغوي دې نه هم انکار کړي دي او ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ د ظاهر نص پسې تللي دي .

نو د شرح عقائد متن په هغه غلاط رد کوي :

في دعاء الاحياء للاموات وصدقتهم نفع لهم عند اهل السنة خلافاً للمعتزلة .

هر څې ثواب د صوم ، صدقې ، حج ، عمرې او د عتق دي امواتو ته رسيږي او په دې باندې به زه کې تعداد کې احاديث تاسو ته ذکر کړم :

(۱) مصنف ابن ابي شيبة جلد ۳ صفحه ۳۸۶ :

حدثنا هُشيم عن حجاج عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده انه سأل النبي صلى الله عليه وسلم فقال يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ان العاص بن وائل كان يأمر في الجاهلية . عاص ابن وائل چې دې امريې کړې وه په جاهليت کې .

ان ينحر مائة بُدنة . چې له ده نه دې سل (۱۰۰) بُدني حلالې شي دا سوال عمرو بن

العاص كړې دي او عمرو بن شعيب راوي ددې حديث هغه جد دده دي چې ده عمرو بن عاص دي نو دا هشام يې ورور شو .

وان هشام بن العاص نحر حصته من ذلك خمسين بدنة . زما ورور هشام پنځوس (۵۰) اوښان حلال كړي دي .

أفأنحر عنه . زه ترې نه حلاله وكړمه دا باقي پنځوس زه هم حلال كړمه .

فقال أن أباك لو كان أقر بالتوحيد فصمت عنه او تصدقت عنه او اعتقت عنه بلغه ذلك .
رحمت عالم ﷺ ورته فرمايي كه ستا پلار چيرته مُقر بالتوحيد واي بيا تا روژه ترې نيولې واي خيرات دې ترې كړې واي غلام دې ترې آزاد كړې واي بَلَغَهُ ذلك رسيدلې به وه ورته دا اوس ورته نه رسيږي ځكه مقر بالتوحيد نه دي .

نو دا واضح دليل په دې دي چې مؤمن ته صدقه ، روژه ، عتق يعنې هر كارِ خير اجر رسي ورته . دا حديث مسند احمد بن حنبل جلد ۲ صفحه ۱۸۱ كې هم ذكر كړي عمدة القاري هم ذكر كړي جلد ۴ صفحه ۴۹۸.

و أقر الألباني بصحة الحديث . په السلسلة الصحيحة جلد ۱ صفحه ۴۸۳ كې الباني وايي :

قلت وهذا اسناد صحيح رجاله كلهم ثقات على الخلاف المعروف في عمرو ابن شعيب عن ابيه عن جده و هشيم ولحجاج كلاهما مدلس . دا دلته علامه هيتمي يوه جرحه كړې ده په دغه حديث باندې چې ددې سند كې هشيم راغلې عن حجاج او هشيم او حجاج دواړه مدلسين وه مدلس چې كله عنعن وكړي مقبوله نه وي الباني په دې جرحه رد كوي :

ولكنهما ما قد صرحا بالتحديث فزالت شبهة تدليسهما .

د مسند احمد چې كومه حواله ما ذكر كړه هغلته الفاظ داسې دي :

حدثنا هشيم قال اخبرنا حجاج . دا عنعن هلته نشته په الفاظو د تحديث سره يې روايت كړې دي د اخبار سره ، نو داد هغه اعتراض دفعه وشوه ولكنهما قد صرحا بالتحديث فزالت شبهة تدليسهما ، كوم چې په مجمع الزوائد كې علامه هيتمي په دې اعتراض كړې دي چې په

دې کې دوه راويان مدلسين دي او دلته عنعن ده نو عنعن په روايت د ابن ابي شيبة کې ده په روايت د مسند احمد کې په لفظ د اخبرنا سره ده.

دويم: مصنف ابن ابي شيبة جلد ٣ صفحه ٣٨٦ کې باب لګوي:

**باب ما يتبع الميت بعد موته: حدثنا جعفر بن عون عن هشام بن عروة عن ابيه عن عائشة رضي الله عنها قالت جاء رجل الى النبي صلى الله عليه وسلم فقال ان امي افتلتت نفسها وانها لو تكلمت تصدقت.** که هغې چيرته خبرې کړې واي نو خيرات به يې کړې واي يو ناڅاپه مړه شوه.

**فهل لها من اجر.** څه اجر شته. **ان تصدقت عنها.** چې زه د هغې نه خيرات وکړمه.

**قال نعم.** رحمت عالم صلى الله عليه وسلم جواب کوي هاو اجر شته دي.

دا حديث مسلم کوم چې بيروت چاپ دي ذکر کړي جلد ٥ صفحه ٧٣٠ پاکستان چاپ جلد ٢ صفحه ٦٩٦.

بخاري جلد ١ صفحه ٤٦٧، مصنف عبد الرزاق جلد ٩ صفحه ٦٠، معجم الاوسط جلد ١ صفحه ٢١٧، مسند ابي يعلى جلد ٧ صفحه ٤١٠ سنن بيهقي جلد ٤ صفحه ٦٢، مسند ابي عوانة جلد ٣ صفحه ٤٩٣.

په مذکور حديث کې ابي عوانة رضي الله عنه فرمايي:

**الدليل على ان من ماتت غير وصية وله ولد يتصدق عنه لتكونن له كفارة.**

يو سړي مړ شي وصيت يې نه وي کړې اولاد خيرات ورپسې کوي چې دا کفاره شي.

نن صبا خيرات کول څکه بند کار دي چې خلک لا علمه دي د وصيت په قدر نه پوهيږي شريعت ده لره اختيار ورکړي چې ته محتضر نه يې او مرګ درته نږدې شي او بيمار شي نو ته ثلث نه په اقل باندې وصيت کولې شي دا ددې لپاره چې تا نه ژوند کې دروغ ويل شوې قسمونه به درنه شوي نوري کمزورياني به شوې وي په صدقه فطر زکواة کې به درنه تقصيرات شوې وي دا ټول مال کې د دريمې حصې ته حقداري يې دا راواخله خيرات يې کړه په خپله زندګي کې چې هغه ستا صفائي او کفاره شي نو اوس څوک په ثلث د مال وصيت کوي لا علمه دي کنه.

بهتره طريقه خو يې داده چې هر کله لا علمه دي اوس همداسې قبر کې پريږدي نو مه

يې پرېږده ته پرې صدقه وکړه هغه دې وصيت نه وي کړې کنه وارث ته په کار دي چې هغه وصيت ونه کړو او دې پسې لګيا شي تقريباً د ټول مال څه کم دريمه حصه پسې خيرات کړي فرض نه ده بهتره داده تبرع ده او احسان دي له ميت سره.

ګوره دې حديث نه معلوميږي که هغې خبرې کړې واى نو وصيت به يې کړې وه خو اوس يې نه دي کړي زه څه وکړمه خيرات وکړم ترې نه وايي وي کړه ترې نه.

سنن مأثوره هم دا حديث ذکر کړي په جلد ۱ صفحه ۳۸۷ کې هغې کې باب لګوي:

باب يستحب لمن يتوفى فجاءة ان يتصدقوا عنها.

مستحب داده چې څوک يو ناڅاپه مړ شي نو خلک دې ترې نه خيرات وکړي.

سنن بيهقي جلد ۴ صفحه ۱۰۹ کې باب لګوي:

باب الصدقة عن الميت، بيا باب لګوي: اذا مات فجاءة هل يستحب لاهله ان يتصدق عنه، يو ناڅاپه څوک مړ شي آيا مستحب دي چې خلک ترې خيرات وکړي نو د حديث په ذکر سره د نعم جواب راځي ترجمه کې ده نعم نه وي ويلې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نعم ويلي ده صرف سوال ذکر کړي په حديث کې نعم راغلي او ده په ترجمه کې سوال ذکر کړي آيا مستحب دي چې سړي مړ شي خيرات پسې وشي بس جواب يې هغه حديث بيا ذکر کړي دا مذکوره حديث د غه ټولو مذکورو کتبو په مذکورو صفحو کې ذکر کړې دي.

دريم: مصنف ابن ابي شيبة جلد ۳ صفحه ۳۸۷:

حدثنا ابن عيينة عن الزهري عن عبيدالله عن ابن عباس ان سعد بن عُبادة استفتى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في نذر كان على امه توفيت قبل ان تقضيه.

حضرت سعد بن عبادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ استفتاء وکړه د يو نذر باره کې دده په مور پاتې وه هغه وفات شوه نذر يې پوره کړې نه وه.

فقال اقضه عنها. پوره يې کړه ته د هغې نه.

څلورم: دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۳ صفحه ۳۸۷:

حدثنا عبدالصمد بن عبدالوارث عن حماد بن سلمة عن عاصم عن ابي صالح عن ابي هريرة

رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال ان الرجل ليرق الدرجة فيقول ما هذا .

یو سړي پورته کولې شي په درجه في الجنة کې بیا دې به وایي د کوم ځای نه شو ما ته دا مقام زما اعمال خو ددې موافق نه وه .

فیقال . ده ته به وویلې شي .باستغفار ولدك من بعدك لك . ستا نه وروسته ستا بچي ستا لپاره بخښنه غوښتې ده د هغې په وجه دا مقام درکول شوې .

پنځم :

حدثنا وكيع عن سفيان عن حبيب بن ابي ثابت عن عطاء وعن سفيان، عن زيد بن اسلم قالوا جاء رجل الى النبي صلى الله عليه وسلم فقال يارسول الله صلى الله عليه وسلم أأعتق عن ابي وقد مات؟

پلار مې مړ دي زه ترې غلام آزادولې شم آزاد کړم . قال: نعم .

څه به په عتق کې راغلې وي څه به په دُعاء کې راغلي وي څه به په حج عمره ، صوم صلواة کې راغلې وي دا ټول روایات ددې ثبوت کوي چې کارِ خیر ذي اجر وي هغه د مرده نه کولې شي اثاتاً .

شپږم : دارنګې مصنف ابن ابي شیبة جلد ۳ صفحه ۳۸۷ :

حدثنا وكيع حدثنا ابن رواد حدثنا شريك عن الحجاج بن دينار قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: ان من البر بعد البر ان تصلي عنهما مع صلاتك وان تصوم عنهما مع صيامك وان تصدق عنهما مع صدقتك .

نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايي نيکي وروسته له نيکي نه د والدينو سره داده چې مونځ وکړې د والدينو نه خپل مونځ کوي یو څو رکعاته مور او پلار پسې وکړه خپله روژه چې نیسي هغوي پسې هم څه روژې ونیسه ځان لره چې خیرات کوي نو هغوي پسې هم خیرات وکړه نو دا بِر د والدینو دي او دا احسان شو له والدینو سره بعد الوفات هر کله چې نبي علیه السلام د بالوالدین احساناً دا ترجمه وکړه نو بیا خو د نص قرآني نه هم دا ثابته شوه چې د مور او پلار سره په احسان باندې امر شوې دې نو ولد لره وروسته له وفات نه احسان د

والدينو هغوي پسې خيرات كول دي هغوي پسې صدقه بخښل دي هغوي پسې دعاء گانې كول دي وغيره.

اوم: مصنف ابن ابي شيبة جلد ۳ صفحه ۳۸۸ زه چې په كومه مسئله كې د مصنف ابن ابي شيبه حواله پيدا كړم بيا د بل كتاب حواله نه وركوم اكثرأ د هغې وجه داده چې دا ډير د اسلافو نه دي اول رتبه كې امام مالك رَحِمَهُ اللهُ دي د مؤطأ بيا دويمه رتبه كې تقريباً دې دي بل شيخ الكل دي د امام بخاري امام مسلم د ابوزرعه د امام ابوحاتم د امام ابي داود د امام نسائي ددې ټولو استاذ دي او دا ټول ترې نه نقل كوي او دده سند هم اكثر مختصر وي:

حدثنا الفضل بن دُكين عن الحسن بن صالح عن عبدالله بن عطاء عن ابي جعفر ان الحسن والحسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا كانا يعتقان عن علي بعد موته.

حضرت حسن حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وفات نه وروسته به يې ده پسې غلامان آزادول.

اتم: دارنگې عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ۴ صفحه ۴۹۸:

وفي كتاب القاضي الامام ابي الحسين بن الفراء عن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أنه سأل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقال يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا نتصدق عن موتانا ونحج عنهم وندعوا لهم.

چې مونږ خيرات د مړو نه كوو مونږ ترې نه حجونه كوو او مونږ ورته دعاء كوو.

فهل يصل ذلك اليهم. دا مړو گانو ته رسيږي او كه نه.

قال: نعم. رحمت عالم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته جواب وركوي: نعم ويفرحون به. مړه گان پرې خوشحاليږي.

كما يفرح احدكم بالطبق اذا اهدي اليه. لكه يو كس ستاسو خوشحاليږي په يو خانك سره چې ډك د فروټو نه وي او راوړلې شي ده ته په هديه كې.

نهم روايت: صحيح مسلم معرب بيروتي چاپ جلد ۵ صفحه ۷۳:

حدثنا يحيى بن ايوب وقتيبة بن سعيد وعلي بن حجر قالوا حدثنا اسماعيل وهو ابن جعفر عن العلاء عن ابيه عن ابي هريرة ان رجلاً قال للنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان ابي مات

وترك مالاً ولم يوص .

پلار مې مړ شو مال يې پريښې دي وصيت يې هم نه دي کړي .

فهل يكفر عنه ان اتصدق عنه . کفاره ترې نه کرځي چې زه ترې نه صدقه وکړمه .

قال : نعم . وصيت چې نه وي هلته صدقه جائزه ده تبرع ده .

هم دا حديث مسند ابي عوانة هم ذکر کړي جلد ۳ صفحه ۴۹۳ کې .

لسم روايت : سنن ابي داؤد جلد ۲ صفحه ۵۴ :

حدثنا محمد بن كثير اخبرنا اسرائيل عن ابي اسحاق عن رجل عن سعد بن عبادة انه قال يارسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان ام سعد ماتت .

خپله مور ياد وي . فأي الصدقة افضل . کومه صدقه افضل ده .

قال : الماء . اوبه . قال فحفر بئراً . کوهي وکنسته .

وقال هذه لأم سعد . دا زما د مور په نوم باندې شو .

يو شي د چا په نوم کول په نوم د نذر باندې دا جائز نه دي البته يو شي د چا په نوم کول د ايصال ثواب په نيت باندې دا بيا جائز دي .

نذر عبادت دي محضاً لذات الله تعالى د هغه په نوم نيول کيږي د بل چا په نوم نذر نه نيول کيږي صاحب د روح المعاني يو ځاى کې سخت غصه شوې دي وايي هغه مشرکين چې نذورنيسي په عبادو باندې وايي داد چينجو نه هم ډير شوې دي نو تاسو فتوى د شرک په دې مه کوي .

پنجاب کې چې کومې بکسې زيارتونو سره پرتې وي او پرې ليکلي وي نذرانه او حرڅالودا غلط لفظ دي .

تفسيرات احمدي ليکلي دي :

اما للبقرة المنذورة لأولياء الله تعالى فحلال طيب اكله . په دغه ايات وما اهل به لغير الله ، بقره منذوره لأولياء الله پاکه ده خوړل يې روا دي .

دا چې په نوم د ايصال ثواب باندې وي ځو شيان زمونږ په خلکو کې غلطيانې دي مثلاً

يو ځاروي دي بوځي يې د چا په نوم يې هم کړي بيا يې بوځي زيارت ته او هلته يې حلالوي نو که ددې ثواب د هغه په نوم باندې وي دا خو جائز دي دليل دغه مذکور حديث دي چې : هذه لأم سعد . کوهي د أم سعد په نوم شو چې وفات شوې وه .

او دا عمل دوي وهابيان هم کوي دوي يو ځل يو ځای کې سره راغونډ شوي وه زمونږ يو طالب وه هغه مونږ خبر کړو ماسخوتن چې دلته وهابيان راغلي او خلک وايي چې بشاوري هم راځي مونږ دوه دي خوره پرې مونبو دله او ما وويل چې دا خو ډيره بنه خبره ده چې بشاوري لا د کوتي نه بهر شو مونږ ورغلو هلته يو مسجد وه چې لاړو نو ددوي ملايان راغلي وه خو بشاوري په کې نه وه وروسته بيا مونږ ته يو کس وويل چې بشاوري ګاډي کې مسجد پورې راغې خو چا ورته وويل چې دا خو مولوي غلام حضرت غلام هم راغلي نو د تيښتي لاره يې غوره وګڼله او لاړ .

هلته چې کيناستلو نو خبرې وشوې وايي دا شرک دي چې څوک د چا په نوم څه منځته کوي نو هغه ته ما وويل چې دې اقوالو کې ددوي مقصد ايصال ثواب وي دا الفاظ چې دا شي مې د فلاني په نوم منلي ده ددې مقصد ايصال ثواب وي يو شي د چا په نوم کول دوه معنی لري د چا په نوم کول نذراً او د چا په نوم کول اثاباتاً دا فرق لري دا شي د فلاني په نوم باندې نذراً ، دا شي د فلاني په نوم ايصابتاً دده ثواب هغه ته بخښم ايصابتاً تسميه د چا دا څه شرک نه ده .

دا حديث د ابي داؤد مې ورته پيش کړو : وقال هذه لأم سعد . حتی چې شارحين ليکي چې دا کوهي مسمی په لأم سعد شو نو دا جائز دي وايي نه دا چې د چا په نوم شي دا مردار ده ما ورته وويل چې ستاسو مدرسې ته څوک ګډ چيلي راولي چې دا به د بشاوري مدرسې ته بوځه دا څنګه ده وايي دا خو جائز ده نو ما ورته وويل د بشاوري د مدرسې نوم اخستل جائز دي او د يو زيارت نوم اخستل شرک دي دا فرق يې څه شي دي او په کوم ځای کې ده .

بيا هغه ته ما وويل چې ستاسو د مسجد نوم څه ده وايي مسجد حمزه ما ورته وويل چې مسجد به د هغه چا په نوم يادېږي مثلاً چې د محلې مشر وي يا باني ددې مسجد وي او يا به يې ثواب هغه ته بخښل شوې وي .

اوس تاسو دا خپل مسجد ته مسجد حمزه ولې وايي ؟ حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ستاسو جومات هغه آباد کړې دي او که ددې مسجد ثواب مو هم حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې بخښلې دي دا تسميه مو له څه وجهې ورته ايښي ده نو ما ورته وويل که محض تسميه اثاباتاً شرک شي نو د مسجد نوم حمزه کيخودل هم بيا شرک دي دا دې هم د هغه په نوم کړو کنه .

دا مدارس د خلکو په نومونو باندې دي نو زمونږ د عوامو په اصلاح کوي دا زړې ښځې اکثر دا وايي که زما دا مشکل وشو نو فلاني بابا ته به بيا جنډه وړمه هغه خو په جنډو نه خوشحاليږي کنه دا بعضې خلک زياتي کوي اول جنډا کوم کتاب را اخيستي ده تاسو کُتب د فقه وګوري عبد الغني نابلسي رَحِمَهُ اللهُ په کشف النور کې القاء د بعضې غلافونو د حسن نيت په وجه باندې عزت د دغه ولې يې مقصد وي يو غلاف ته يې جواز ورکړې نو د هغې دا مقصد شو چې ته به چيرته په بازار کې کړه ګوري او راوړي پرې اچوي به يې لکه دا زيارتونو کې دومره زياتې کيږي خلکو زوړندې کړې وي چې هيڅ حد نه لري دومره يې پرې اچولې وي .

بيا د اعلام لپاره بعضې خلکو جنډه په شناخته قياس کړې ده چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام کانړي ودروه چې دا زمونږ ورور نخښه شوه دا اعلام د پاره نو د اعلام لپاره خو يوه جنډه کفايت کوي نو د دومره زياتو جنډو ته څه ضرورت دي لکه ددې هرې خبرې به علماو نه تپوس کيږي بناء على القبر چې کوم فقيه جائزه کړې دضرورت لپاره که چيرته دلته زائرين راځي شپه راځي تلاوت کوي د باران د يخني نه د بچ کيدو لپاره که بناء وشي نو باک نه کوي رڼا يې په دې صورت جائز کړې ده که يو څوک تلاوت کوي او هغه ته يوه شمعه بله شي چې تلاوت وکړي جائزه کړې ده په دې شکل شمعې بلول چې هلته د زيارت په خوا کې تور کوزه ړې جوړه کړې وي او ډيرې شمعې بليږي او د هرې جمعې په شپې بليږي دا خو يو فقيه هم جائز نه ګڼي دا خو ښکاره د حديث مخالفت دي .

نو دغه مسئله د نوم کولو چې ده نو د عوامو مقصد اثابت وي نذر نه وي پوهيږي نه نو خپل عوام پوهه کول په کار دي چې تاسو نذرانه د ولي په نوم مه مني بلکې د خداى په نوم يو شي نذر کړي يا يې ومني ثواب يې فلاني پسې وبخښي اثاباتاً يو شي د چا پسې بخښل دا ناروا نه دي .

یوه بله جزیه هغه مسئله د عقر ده چې بعضې خلک څاروي وړي او په زیارت کې ذبحه کوي نو دا زمونږ شریعت منع کړې دي لا عقر في الاسلام .

امام ابي داؤد باب لکوي: باب کراهیة الذبح عند القبر، نو بیا دا حدیث پیش کوي:

**لا عقر في الاسلام** . په اسلام کې عقر نشته نو عقر داوه چې هغوي به دا کار کولو چې یو کس به سخي وه هغه به چې مړ شو نو وروسته د وفات د هغه نه به تلل او د قبر سره به یې حلالې ورته کولې چې مونږ یې دا دربار ګرم ساتو چې دا سخا یې وروسته هم جاري ده .

نو دا څاروي وړل او هلته حلالول او دا تقرب عبادت ګڼل دا زمونږ د شریعت مخالفت دي هر شي چې دې منلې دي هلته د وړلو ضرورت نشته بل ځای حلال کړه ثواب یې وروبخښه او که خامخا وړي نو دا سوچ کوه چې دغې مزار نه لرې کوم ځای کې حلال کړه هغه ځای کې یې پوخ کړه .

یوې جزیې بلې ته موهم چې سوچ وي که چا وي وړ هلته یې حلال کړو نو دا شي پاک دي که ناپاکه نو دې کې به سوچ کولې شي چې داد تعظیم د ذلك الولي دپاره دي او که د اثابت د ذلك الولي د پاره دي که دا د اثابت لپاره وه ثواب یې وربخښلو نو دا شي حلال طیب، حلال دي پاک دي بیا په اسم الله اخیستلې شوې دې په دې شرائط د ذبحې پوره شوې دي داد مؤمن ذبیحه ده دا پاکه ده ﴿وَمَا لَكُمْ أَلَّا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ که نه یې خوري هغه تا ته متوجه کیږي څه چل دي په تاسو چې اسم الله پرې یاد شوې تاسو یې نه خوري .

او که چیرته داد تعظیم لپاره وي ددې لپاره یې وړي وي چې زه په دې د ولې تعظیم کومه نو ګوري بیا دا شي مرداریږي د غیر الله د تعظیم لپاره چې شي حلال شي هغه بیا مردار دي ﴿مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ﴾ په دې ځای مفسرین کرام وایي چې یو بادشاه راروان وي او ته د تعظیم لپاره د هغه خپو کې ګډ حلالوي دا حرام دي دا په ما ﴿مَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ﴾ کې راځي .

## په قبر چې سوریږي وي یا بل څه شي وړل یې جائز دي او که نه ؟

بعضې قبور داسې وي چې هغه خو اداري جوړې شوې وي دربار ترې جوړ وي د هغې مالکان موجود وي څکه په هغې خرچه کوي دا هغه ملکیت کې راځي بیا نو هغه څوک نه شي

اوچتولي .
او که په عامو قبورو باندې وي صاحب د قبر يې مالک نه دي نو دا به يا چا نه غور ځيدلي وي يا به يې د خيرات په نوم اچولي وي که د خيرات په نوم يې اچولې وي څه باک نه لري دا اخلي يې خيرات خوزئ ميرېانې يې هم خوري ته يې هم خوره.
او که نه داسې وي چې ګمان دي د لقيط وربانديې وي چې دا به چا نه غور ځيدلي وي نو يا هماغه مسئله د لقيط ده چې تر دري ورځو به څي هلته به اعلانونه کوي يا به هفته بعد بيا به مياشت بيا به کال بعد اعلان کوي کال بعد به يې خيرات کوي که لس، کاله وروسته يې مالک پيدا شو د جيب نه به يې لندوي نو بيا مسئله سخته ده .

## او که څوک نذر ومني بيا د نذر نه خوراک کولې شي او که نه؟

نو د هغې نه خوراک ده ته جائز نه دي دا يو عامه کليه ده هر يو صدقه واجبه مفروضه هغې نه چې څوک متصدق وي اکل نه شي کولې او د هرې صدقې نفلي نه بې کولې شي مثال صدقه فطر بيرته ورکوونکي نه شي خوړلې زکواة نذر نه شي خوړلې کوم شي چې په تا واجبيږي بيا واجب شي که واجب من الله وي که تا په ځان واجب کړې وي هغه بيا ته نه شي خوړلې او چې ته يې نه شي خوړلې اصل او فرع دې هم نه شي خوړلې .
خبره دې ځای نه وه چې فحفر بئراً وقال هذه لأم سعد نو چې کوم عامو ښځو نذرانې منلې او نيت يې د اثابت وه نو پوهه يې کړي نذر مه منه بلکې نذر د خدای په نوم ومنه او ددې ثواب د چا نوم پسې کړه، نو يو شي د چا په نوم کول نذراً او يو شي د چا په نوم کول اثاباً فرق لري نذراً جائز نه دي اثاباً جائز دي .
يو لسم روايت : دارنګې سنن الدار القطني جلد ۳ صفحه ۲۹۹ :
حدثنا القاضي المحاملي حدثنا ابو مية الطرسوسي حدثنا ابو خالد الأموي حدثنا ابو سعيد البقال عن عطاء بن ابي رباح عن زيد بن ارقم قال قال رسول الله ﷺ اذا حج الرجل عن والديه .
څوک چې مور پلار نه نفلي حج وکړي .
تقبل منه . قبول به کړې شي له ده نه ، ومنهما او د والدينو نه .

واستبشرت ارواحهما في السماء. او ارواح د والدینو به یې په اسمان کې خوشحال وي.

وكتب عند الله تعالى برأ. او دغه بچي به د خدای تعالی په نزد د ابرارو نه وليکلې شي

په معنی د بِر الوالدین سره دا به د هغه چا نه شي چا چې د مور او پلار سره ښیگړې کړې وي

دې حق کې کمزورې نه وي راغلې.

دولسم روایت: دا هم سنن دار القطني په مذکوره صفحه لیکلي دي:

عن ابن جريج عن عطاء عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من حج

عن ابويه او قضى عنهما مغرما بعث يوم القيامة مع الأبرار.

دیارلسم روایت: دا هم سنن الدار قطني را اخیستي په مذکوره حواله:

عن عطاء عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال اتى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رجل.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته یو سړي راغې.

فقال ان أبي مات وعليه حجة الاسلام. زما پلار وفات شوې او په هغه حج ورباندې ده.

أفأحج عنه؟ قال أرأيت لو ان أباك ترك ديناً. که پلار دې په ځان باندې قرض پرېښې وي.

أقضيته عنه. تا به ادا کولې له هغه نه.

قال: نعم. قال: فاحجج عن ابيك. حج ترې وکړه.

داد نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ قیاس دې قیاس د حق الله یې کړې په حق العبد باندې چې هر کله حق

العبد مطالب لرې دنیا کې ظاهراً د هغې اداء ته کولې شي نو د حق الله هم کولې شي.

څوارلسم روایت: المعجم الکبیر للطبراني جلد ۱۰ صفحه ۱۳۳:

حدثنا محمد بن عبد الله الحضرمي حدثنا محمد بن عبد الرحمن بن غزوان حدثنا شريك

عن سالم الافطس عن سعيد بن جبير عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أظنه عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

چې مرفوع یې کړو.

قال: اذا دخل الرجل الجنة سأل عن ابويه وزوجته وولده فيقال انهم لم يبلغوا درجتك

وعملك. هغه ستا درجې ته نه دي راغلي.

فيقول يا رب قد عملتُ لي ولهم . دې به وايي ما چې اعمال کړي د ځان لپاره مې هم کړي ددوي لپاره مې هم کړي .

فيؤمر بإلحاقهم بهو . امر به وشي چې دده والدين ده ته جنت ته راولي .

قرأ ابن عباس رضي الله عنه. ولوست ابن عباس رضي الله عنه دا ايات : ﴿ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا أَلَتْنَاهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَيْءٍ ۚ كُلُّ امْرِئٍ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ ﴾ ( سورة الطور آيت : ۲۲)

پنځلسم روايت : المعجم الاوسط جلد ۷ صفحه ۹۲ :

حدثنا محمد بن علي المروزي حدثنا محمد بن عبدالله بن قهزاذ حدثنا علي بن الحسن بن شقيق حدثنا خارجة بن مصعب عن عثمان بن سعد عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال ما على احدكم اذا اراد أن يتصدق بصدقة .

څه به وشي په يو کس باندې چې اراده د يو خيرات لري .

أن يجعلها عن أبويه فلا ينقص من أجورهم شيئاً . چې وګرځوي هغه د مور او پلار نه کم به نه شي له اجورو ددوي نه څه شي .

شپاړسم روايت : اخبار مكة للفاكهي جلد ۱ صفحه ۳۸۸ :

عن عمرو بن اوس الثقفي عن ابي رزين قال قلت يا رسول الله إن أبي ادركه الاسلام شيخاً كبيراً .

پلار مې مسلمان دې شيخ كبير دې .

لايستطيع الحج والعمرة . طاقت د حج او عمرې نه لري .

والظعن . سوريدل په اوښ باندې . اذا حج قال صلى الله عليه وسلم : حج عن ابيك واعتمر . حج هم ترې وکړه عمره هم ترې وکړه .

اولسم روايت : اخبار مكة للفاكهي جلد ۱ صفحه ۳۸۹ :

عن عبيدالله بن ابي رافع عن علي بن ابي طالب رضي الله عنه قال ان امرأة شابة من خثعم جاءت

رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقالت ان ابي شيخ قد أفند وأدركته فريضة الله عزوجل على عباده في الحج ولا يستطيع أداءها فهل يجزئ عنه ان أؤديها عنه؟ قال النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نعم.

اتلسم روايت: كتاب الاموال لابن زنجويه المتوفى ۲۵۱ جلد ۳ صفحه ۱۲۷۲، ځلور كاله د امام بخاري نه مخکې وفات شوی:

اخبرنا ابونعيم اخبرنا سفيان عن ابن جريج عن عطاء قال كان يستحب ان يطعم عن ابويه وهما ميتان ونفعله حتى مات.

حضرت عطاء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مستحب ګڼله چې سړي مور او پلار پسې خيرات وکړي چې هغوي مړه وي او ده هم خپله مور او پلار پسې خيراتونه کول تر دې چې مړ شو.

نولسم روايت: المعجم الاوسط جلد ٦ صفحه ۳۱۴:

حدثنا محمد بن داود بن اسلم الصدفي حدثنا عبيدالله بن عبدالله المنكدري حدثنا محمد بن اسماعيل بن ابي فديك قال سمعت ابامحمد الشامي انه سمع اباهريرة يذكر أنه سمع أنس بن مالك يقول سمعت رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقول ما من أهل بيت يموت منهم ميت.

يو کور والا نشته دي چې هغې کې مړي وشي.

فيتصدقون عنه. فاء د تعقيب مع الوصل لپاره وي بس متصل خيرات وکړي.

بعد موته. وروسته له مرګ د هغه نه.

الا اهداها إليه جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ. مګر پيش کړي دا صدقه دې مړي ته جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ.

على طبق من نور ثم يقف على شفير القبر فيقول يا صاحب القبر العميق هذه هدية أهداها إليك أهلك فاقبلها فيدخل عليه فيفرح بها.

دا يوه هديه ده چې را ليږلي تاته اهل دې ستا قبوله کړه دا کس داخل شي دغې قبر ته دغه نور نو خوشحاله شي دغه مړي په هغې.

ويستبشر. او زيرې ورکړي يو بل ته. ويحزن جيرانه. او خفه شي ګاونډيان دده هغه.

الذين لايهدي إليهم بشيء. چې په دوي پسې څوک څه خيرات نه کوي.

نو معلومه شوه چې خیرات مړې پسې کیږي د اهلسنت مړي خوشحاله او د وهابیانو پنجپیریانو مړي خفه وي چې ما پسې ولې خیرات نه کوي.

## حکایت :

معدن مولوي صاحب ډیر حاضر جوابه وه یو ځل چا پروګرام ته بده ببري ته بیولې وه نو معدن مولوي صاحب تقریر کړې وه او په تقریر کې د صدقې بیان کړې ده هلته په مجلس کې ورته یو بې ادبه وهابي ناست وه هغه راپاڅیدلې وه وایي چې مولانا صاحب تا وویل چې دې مړو ته صدقات رسیږي نو معدن مولوي صاحب وایي جواب ورکړو چې هاو مړو ته رسي نو وهابي جاهل وه صدقات رسي معنی دا چې هغې نه ړنا جوړه شي قبر پرې ړنا شي د صدقې اجر او ثواب رسي.

د رسید و خو دا معنی نه ده چې دا غوښې او وریژې وررسي نو هغه پرې دا اعتراض کړې وه چې صدقات وررسیږي نو ستاسې مړي خو به ډیر زیات طعامونه خوري دوي خو به ډیر قاذورات هم کړې وي دا قبرونه خو به یې ډک کړې وي نو بیا دې وهابي وایي دا خبره وکړه وایي معدن مولوي صاحب هغه د چا چې پروګرام وه او چا ده ته دعوت ورکړې وه هغه ته یې وویل چې اجازت دې چې جواب ورکړم.

هغه وویل ورکړه جواب ورته، معدن مولوي صاحب وایي ورته وویل چې دا خو داسې وي چې تاسو وهابیان خپلو مړو پسې صدقې او خیراتونه، نه کوي ستاسو مړي په قبرونو کې ډیر اوږي وي او زمونږ اهلسنت حنفیان خپلو مړو پسې صدقې او خیراتونه کوي هغوي ماړه وي دا ستا په فتوی چې هغوي قاذورات وکړي هغه ځای ډک شي بیا د وهابیانو مړي پسې راشي هغه ټول وخوري ځکه اوږې وي کنه وایي بیا قبر صفا شي.

نو جاهل ته چې داسې جواب ورنه کړي خو سوال یې د جهل نه ډک ده وایي ټول مجلس پسې وخندل ﴿لَن يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَاؤُهَا﴾ وینه او غوښه خو خدای تعالی ته نه رسي خدای تعالی یې قبلوي.

نو داد فیتصدقون نه د اولې ورځې د خیرات استدلال کولې شي تاسې په دغه جزیه باقي دا عمومات دي او استدلال د عام نه څه جرم نه دي عند انتفاء الخاص يستدل بالعام.

نو معلومه شوه چې خيرات مړي پسې کيږي د اهلسنت مړي خوشحاله او د وهابيانو پنجپيريانو مړي خفه وي چې ما پسې ولې خيرات نه کوي .

**حکایت :**

معدن مولوي صاحب ډير حاضر جوابه وه يو ځل چا پروګرام ته بده ببري ته بيولې وه نو معدن مولوي صاحب تقرير کړې وه او په تقرير کې د صدقې بيان کړې ده هلته په مجلس کې ورته يو بې ادبه وهابي ناست وه هغه راپاڅيدلې وه وايي چې مولانا صاحب تا وويل چې دې مړو ته صدقات رسيږي نو معدن مولوي صاحب وايي جواب ورکړو چې هاو مړو ته رسي نو وهابي جاهل وه صدقات رسي معنی دا چې هغې نه ړنا جوړه شي قبر پرې ړنا شي د صدقې اجر او ثواب رسي .

د رسيدو خو دا معنی نه ده چې دا غوښې او وريژې وررسي نو هغه پرې دا اعتراض کړې وه چې صدقات ورسيږي نو ستاسې مړي خو به ډير زيات طعامونه خوري دوي خو به ډير قاذورات هم کړې وي دا قبرونه خو به يې ډک کړې وي نو بيا دې وهابي وايي دا خبره وکړه وايي معدن مولوي صاحب هغه د چا چې پروګرام وه او چا ده ته دعوت ورکړې وه هغه ته يې وويل چې اجازت دې چې جواب ورکړم .

هغه وويل ورکړه جواب ورته ، معدن مولوي صاحب وايي ورته وويل چې دا خو داسې وي چې تاسو وهابيان خپلو مړو پسې صدقې او خيراتونه ، نه کوي ستاسو مړي په قبرونو کې ډير اوږي وي او زمونږ اهلسنت حنفيان خپلو مړو پسې صدقې او خيراتونه کوي هغوي ماړه وي دا ستا په فتوی چې هغوي قاذورات وکړي هغه ځای ډک شي بيا د وهابيانو مړي پسې راشي هغه ټول وخوري ځکه اوږې وي کنه وايي بيا قبر صفا شي .

نو جاهل ته چې داسې جواب ورنه کړي خو سوال يې د جهل نه ډک ده وايي ټول مجلس پسې وخندل ﴿لَن يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَاؤُهَا﴾ وينه او غوښه خو خدای تعالی ته نه رسي خدای تعالی يې قبلوي .

نو داد فيتصدقون نه د اولې ورځې د خيرات استدلال کولې شي تاسې په دغه جزيه باقي دا عمومات دي او استدلال د عام نه څه جرم نه دي عند انتفاء الخاص يستدل بالعام .

او دا کوم قسمونه چې قرآن کریم ته کتابونو جوړ کړي خاص عام مشترک وغیره نو عام د استدلالاتو نه دي ډیر مسائل چې وکتل شي د استدلالاتو نه همدا پیش کیږي مثلاً د سحر لمونځ فرض دي دلیل پرې څه شي دي اقیموا الصلوة دا خو عام دي د سحر لمونځ کې خو نه دي راغلي همدغسې د هر فرض نه استدلال په عام سره کیږي.

نو چې عام دلیل نه شي نو د ډیرو فرائضو فرضیت ثابتول به مشکل شي یا لکه څوک سوال وکړي په سنت لمونځ رکوع څنګه ده ته جواب ورکړي فرض ده هغه به وایي دلیل څه شي دي وارکعوا، فرضو کې که سنتو کې دا خو عام دي.

داسې عام او خاص چې په کې پیدا کوي ډیرې جزیې د دین به پیدا نه کړي دارنګې څوک سوال وکړي قراءت په لمونځ کې څنګه دي نو ته به جواب ورکړي فرض ده هغه به وایي دلیل څه شي دي؟ ته به وایي فاقرؤا ماتیسر من القرآن نو دا خو عام دي مونځ خو یې نه ده یاد کړي.

قوموا لله قانتین. دا عام دي فرض او نفل یې نه دي ښودلي نو تاسو هریو خاص کې ترې استدلال کولې شي په نفلو کې کولې شي په تهجد و کې کولې شي هغه ددې افراد دي ټول صلوة ویل شوې دي او هغې ته هم صلوة ویل کیږي نو دا ادله د ایصال الثواب الی الاموات دي جمله صدقات په کې راغلل.

هغه جدا خبره ده چې ضیافت د اولې دویمې دریمې ورځې فقهاء منع کړې دي او نن صبا زمونږ زیات صدقات دا مروج چې دي ضیافات ترې نه جوړ دي خو هغه به خپل عوام پوهه وي چې شکل د ضیافت به دې ته نه ورکوي نو دضیافت فرق د صدقې نه یو خو په دغې هم کیږي چې ضیافاتو کې دعوتونه وي چې خلکو ته دعوت ورکړي چې زما ډوډۍ ده راشئ نو په اوله دویمه دریمه ورځ دا ضیافت مکروه دي.

او خوره ول د فرشونو جوړول دا اجتماعاتو ټول مکروهاتو کې فقهاء داخل کړي دي خو چونکې دوي وهابیان د فقه نه لرې پاتې شوي یو شي ته په فقه کې مکروه ویل شوې وي نو ته به یې ګوري چې دا یې قبیح لذاته کړو او که قبیح لغیره یې کړو که قبیح لذاته یې کړو علت یې ورته لذاته څه شي پیدا کړو بیا خو مکروه تحریمي دي که لغیره کړو هغه غیر ته

اوس ګوره چې هغه غير څه جرم دي غټ دي ورو کي دي په دغه بناء باندې بيا ته فيصله کولې شي چې دا کراهيت تحريمي دي که تنزيهي دي .

فقيه وويل چې اجتماع د مړي په کورکې يا صنع د طعام غير لره مکروه دي ددې لوي علت داده چې په هغه صدمه او تکليف راغلې دي نور تکليف پرې مه راوله اوس به دلته دا علت ته ګوري چې دا سړي زما په پاتې کيدو خوشحال ده او که په تللو مې خوشحال دي که په دې سړي بوج جوړيدا او ته پاتې کيدي نو مکروه کار دې و کړو هغه باندې غم دي او ته نور هم بوج پرې زياتوي او که هغه ستا په پاتې کيدو خوشحاليدو او درته يې وويل چې پاتې شه او ستا په پاتې کيدو يې تکليف کې کمي راتللو نو هغه علت د کراهيت منتفي شو .

شلم روايت : معجم الاوسط جلد ۲ صفحه ۲۴۶ کې روايت ذکر کوي :

**حدثنا احمد بن طاهر قال حدثنا جدي حرملة بن يحيى قال حدثنا حماد بن زياد البصري قال حدثنا حميد الطويل وكان جاراً لنا قال سمعت انس ابن مالك رضي الله عنه يقول سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول : أمتي أمة مرحومة متاب عليها .**

امت زما امت مرحومه دي توبه يې قبليږي .

**تدخل قبورها بذنوبها** . قبر ته ځي سره د ګناهونو .

**وتخرج من قبورها لا ذنوب عليها** . د قبرونو نه به راوځي ګناه به پرې نه وي .

**تمحص عنها ذنوبها** . محوه کيږي دې امت زما نه ګناهونه ددوي .

**باستغفار المؤمنين لها** . ځکه مؤمنان دعاء ورته غواړي .

نو دلته يو جماعت دي لکه الباني ابن تيميه وغيرها هغوي د اهلسنت او معتزله په مينځ کې تللې هغوي وايي چې دا صدقې خيراتونه دعاګانې دا هر څه مړي ته فائده رسوي خو من الولد د من غير الولد نه يې نه رسوي دا هسې بې ځايه چون چرا ده .

نو دا حديث په هغوي رد کوي : **باستغفار المؤمنين لها** . هغه ايات هم پرې رد کوي :

﴿ الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ ﴾ دا لمونځ د جنازې هم په دوي رد ده د! عام مؤمنان ورته دعاء غواړي : **اللهم اغفر لحينا وميتنا الخ** چې فائده نه کوي بيا څه د پاره عام مؤمنان په

جنازه کې شرکت کوي نو د ابن تيميه په خپله فتاوی کې او الباني دې ډلو د معتزلو او د اهل سنت په وسط کې يو لاره جوړه کړې ده چې معتزله يې مطلقاً ناجائزه ګڼي او اهل سنت مطلقاً جائز ګڼي او دوي په وسط کې دا فيصله وکړه.

يويشتم روايت: صحيح البخاري معرب بيروت چاپ جلد ۴ صفحه ۸:

حدثنا محمد بن سلام اخبرنا مخلد بن يزيد اخبرنا ابن جريج قال اخبرني يعلى انه سمع عكرمة يقول أنبأنا ابن عباس رضي الله عنه ان سعد بن عبادة رضي الله عنه توفيت امه وهو غائب عنها.

ابن عباس رضي الله عنه فرمايي د سعد بن عباده رضي الله عنه مور وفات شوه او دې نه وه.

فقال يارسول الله إن أمي توفيت وانا غائب عنها. وې ويل يا رسول الله صلى الله عليه وسلم مور مې وفات شوه زه غائب ومه.

أينفعها شيء ان تصدقت به عنها. نفع رسوي دې ته څه شي چې زه خيرات ترې نه وکړمه.

قال: نعم: قال فإني أشهدك ان حائطي المخراف صدقة عليها. هغه خيرات شو په دې باندې.

دې حديث کې که لږ غور وشي مور مې مړه وه زه غائب ومه يعنې دې وخت سره دا معمول وه چې څوک به حاضر وه نو څه به يې پسې کول خيرات مور مې مړه ده زه هغه وخت کې نه ومه اوس پسې وکړمه کولې يې شم نبي عليه السلام فرمايي: نعم.

ذکر المحدثين الذين بوبوا في ذلک باباً. څومره محدثين په خيرات د مړي باندې باب لګوي چې څومره دې ډول يې لګوي په دې موضوع باندې دا ډول د بيروت چاپ حوالې دي.

(۱) صحيح مسلم جلد ۳ صفحه ۸۱ باب وصول ثواب الصدقة عن الميت اليه. د مړي پسې د خيرات ثواب رسيږي.

(۲) سنن ابي داود جلد ۳ صفحه ۷۷ باب ما جاء في الصدقة عن الميت.

(۳) سنن ترمذي جلد ۳ صفحه ۵۶، باب ما جاء في الصدقة عن الميت.

(۴) سنن النسائي جلد ٦ صفحه ٢٥١ فضل الصدقة عن الميت .

(۵) صحيح ابن خزيمة جلد ۴ صفحه ١٢٣ باب الصدقة عن الميت عن غير وصية من مال الميت وتكفير ذنوب الميت بها . د مري ګناه پرې ريژيږي اګر که وصيت يې نه وي کړې .

(٦) مصنف عبد الرزاق جلد ٩ صفحه ۵٨ الصدقة عن الميت .

(٧) السنن الكبرى للبيهقي جلد ٦ صفحه ٢٧٧ باب الصدقة عن الميت .

(٨) شرح السنة د امام بغوي جلد ٦ صفحه ١٩٩ باب الصدقة عن الميت .

(٩) مستخرج الطوسي جلد ٣ صفحه ٢٧٧ باب ما جاء في الصدقة عن الميت .

## أقوال الفقهاء والمحدثين في ذلک الباب :

اول : فتح الباري ابن حجر جلد ۵ صفحه ٣٩٠ هغه حديث ذکر کوي چې نبي عليه السلام په قبرينو باندې راغې او لختهيې دوه حصې کړه او پرې خښه يې کړه .

في حديث الباب من الفوائد . يوه فائده يې .

جواز الصدقة عن الميت . د مړي نه خيرات دا جائز دي .

وان ذلك ينفعه . دا نفعه رسوي .

بوصول ثواب الصدقة إليه ولا سيما إن كان من الولد . خاصکر چې د ولد نه وي .

کوره دا معنى چې خاصکر د ولد نه خو رسي خو چې د غير ولد نه وي هم جائزه ده .

دا اشارتاً په ابن تيميه باندې رد دي د ابن حجر صاحب په علمي لحاظ سره سند په هغه ورځې دي شاګرد د عراقي هغه شاګرد د ابن کثير هغه شاګرد د ابن تيميه نو په دغه وجه باندې ابن حجر صاحب په ابن تيميه ډاده نه ورځي مثلاً نن صبا څوک د ديوبند د علماء څوک شاګرد پاتې شي بيا د ديوبند په يو شيخ هغه کله ډاده ورتلي شي د ادب له وجې نه خلک پرې نه ورځي نو دغه شان ابن حجر صاحب هم دي خو خپل وس يې کړې دي عاقل ته اشاره په کار وي خپله هغه دده تفرداتو ته يې پوره اشاره کړې پوره کار يې ورته کړې دي خو نوم نه اخلي .

دې ځای کې هم دا اشاره کوي : وان ذلك ينفعه بوصول ثواب الصدقة اليه ولا سيما ان

كان من الولد .

(٢) شرح النووي على مسلم چې منهاج دي جلد ٦ صفحه ٢٠ :

وفي هذا الحديث جواز الصدقة عن الميت واستحبابها وأن ثوابها يصله وينفعه وينفع المتصدق ايضاً .

صدقه ورکوونکي ته هم نفع ورکوي .

وهذا كله أجمع عليه المسلمون . دا ټول هغه دي چې مسلمانانو په دې اجماع کړې ده .

وسبقت المسألة في أول هذا الشرح في شرح مقدمة صحيح المسلم .

دا چې وايي اجمع عليه المسلمون . مراد ترې نه اهلسنت دي .

وهذه الأحاديث مخصصة لعموم قوله تعالى : ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ وأجمع المسلمون على انه لا يجب على الوارث التصدق عن ميته صدقة التطوع بل هي مستحبة .

(٣) مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح جلد ٦ صفحه ٣٩٠ :

وفي الحديث جواز الصدقة عن الميت وأن ذلك ينفعه بوصول الثواب الصدقة اليه ولا سيما إن كان من الولد وهكذا حكم الدعاء وهو مخصص لعموم قوله تعالى : ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ (سورة النجم آيت : ٣٩)

(٤) الأربعين المتباينة السماع للعسقلاني جلد ١ صفحه ٧٨ :

واما قول اذا تبرع عن الميت بصدقة او عتق . دا قول چې يو سړی د مړي نه احسان کوي په خيرات سره يا په عتق يا په قرباني يا په وقف سره .

هل يصل اليه ثوابه ؟ فالجواب أن ثواب الصدقة يصل إلى الميت عند جمهور أهل العلم من أهل السنة وشذ من قال من المبتدعة .

د بدعتيانو نه څه خلک دي د هغوي قول شاذ دي .

انه لا يصل الى الميت شيء من الثواب الا ما عمله او تسبب في عمله لثبوت الاخبار

الصحيحة بمشروعية الصدقة عن الميت و انه ينتفع بذلك .

نو جمهور اهلسنت يې قائل شول او منکرين يې مبتدعه وګڼل .

بل دوي د هغه حديث نه هم استدلال کوي : اذا مات الانسان انقطع منه عمله . انسان مړ شي له دهٔ نه ددهٔ عمل قطعه شي هغه درې پاتې شي وايي په دې کې خو ختم تلاوت وغيره نشته ولد صالح ، صدقه جاريه او علم ينتفع به دا درې ياد شوي دي .

د هغې جواب دادی چې دوي تر ابن تيميه پورې د حديث تحقيق نه دي کړې .

مفهوم مخالف نه يې استدلال کړي او د نصِ قرآني مفهوم مخالف نه مراديږي نو د حديث نه به څنګه مراد شي انسان مړ شي قطعه شي له دې نه عمله عمل دده هر چې عمل د غير دي ولد دي که غير ولد دي قطعه دې او که نه دي قطعه حديث خو د هغې نه ساکت دي حديث دا ذکر کوي چې دده عمل قطعه شي د غير عمل قطعه شي دا خبره يې بالکل چيرلي نه ده او که ته وايي چې خپل يې قطعه شو د بل خو په طريقِ اولی سره قطعه د ، د هيچا نص په دې باندې نشته بلکې مونږ حديث په دې پيش کړل چې د غير عمل ورسيږي .

نو انقطع عنه عمله . قطعه شي له ده نه عمل دده نو خيرات چې څوک کوي يا تلاوت کوي يا نور افعال خير ايصال ثواب په نيت کوي نو دا خو د نورو عمل ده حديث خو دا نه دي ويلي چې د بل عمل نه رسي دا قطعه دده د عمل راځي د بل د عمل قطعه خو نه راځي نو هلته راځي صدقه جاريه دده عمل دي وروسته له مرګ نه ورسي علم منتفع دده عمل دي وروسته د مرګ نه ورسي .

په دې ولد باندې دلته محدثين اعتراض هم کوي چې دا ولد خو دده عمل نه دي څنګه استثنی کې راغې : الا من ثلاثة کې راغې .

نو جواب دا کوي چې دا ولد په عمل دده باندې شوی دی ده چې عمل نه وای کړي ولد نه پيدا کيده وايي دا دده عمل ده دي ځای نه محدثين همدا ځواب کوي چې دا دده عمل يادوي او بيا دليل کې هغه ايات پيش کوي :

﴿تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ ۝ مَا أَغْنَىٰ عَنْهُ مَالُهُ وَمَا كَسَبَ﴾ .

ما اغني دفعه ونه کړه دده نه مال دده ، وما کسب ، وايي ماکسب خو مال وه د ماکسب د مال نه وروسته ذکر ته څه ضرورت دي سړي چې يو څه کسب کوي خو د مال لپاره يې کسب کوي .

نو جواب دا کوي چې هلته ماکسب په معنی د ماولد سره دي ما اغني عنه ماله وما ولد ، نو ماولد ته يې ماکسب ويلي کنه هر کله چې ولد ته کسب دده ويلې شو ، نو عمل دده شو په دې وجه استثنی ترې نه وشوه .

دارنګې عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ۱۳ صفحه ۱۵۴ :

وفي حديث مسلم عن ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ان رجلاً قال يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إن أبي مات وترك مالاً ولم يوصي فهل يكفي ذلك عنه أن أتصدق قال نعم فالقضية إذن متعددة ويستفاد منه أن الصدقة عن الميت تجوز وأنه ينتفع بها .

دا په فالقضية اذن متعددة کې رد کوي په ابن حجر صاحب باندې هغه په دغه ځای کې دا ويلي دي چې هغه مخکې رواياتو کې ذکر شول چې يو سړي راغې زما پلار وفات شوې زه ترې خيرات وکړم دا دواړه يې يو قضيه ګڼلي ده نو ټول يې يو دليل کړو دې وايي نه دا قضيه متعدده ده هغه جدا قصه ده دا جدا قصه ده .

(۵) شرح سنن أبي داؤد جلد ۵ صفحه ۳۷۷ :

باب ما جاء في الصدقة عن الميت كون الانسان يتصدق عن نفسه بصدقة جارية أو يتصدق عنه غيره بصدقة جارية كل ذلك ينفعه وكل ذلك يصل اليه سواء كانت هذه الصدقة هو الذي تصدق بها عن نفسه فانها تبقى بعد وفاته وهي من عمله .

دا هغه صدقه جاريه بنايي .

أو انساناً تصدق عنه بصدقة جارية أو صدقة غير جارية فان كل ذلك ينفعه .

(۶) التمهيد لما في الموطأ من المعاني والاسانيد جلد ۲۰ صفحه ۲۷ :

فأما الصدقة عن الميت فمجتمع على جوازها لا خلاف بين العلماء فيها وكذلك العتق عن

الميت جائز بإجماع ايضاً .

(۷) المجموع شرح المهذب جلد ۵ صفحه ۳۲۳ :

واجمع المسلمون على أن الصدقة عن الميت تنفعه وتصله .

(۸) الاختيارات الفقهية للترمذي جلد ۱ صفحه ۳۱۳ :

باب ما جاء في الصدقة عن الميت : حدثنا احمد بن منيع حدثنا روح بن عبادة حدثنا زكريا بن اسحاق حدثني عمرو بن دينار عن عكرمة عن ابن عباس رضي الله عنه أن رجلاً قال يا رسول الله إن أمي توفيت أفينفعها أن تصدقت عنها قال نعم فإن لي مخرفا فأشهدك إني قد تصدقت به عنها .

قال ابو عيسى هذا حديث حسن وبه يقول اهل العلم يقولون ليس شيء يصل الميت الا الصدقة والدعاء قال ومعنى قوله ان لي مخرفاً يعني بستاناً .

دې په دې قول سره خپل مذهب ثابتوي ځکه شوافع د تلاوت د ایصال قائل نه دي .

(۹) الدر السنية في الكتب النجدية جلد ۶ صفحه ۱۶۱ داد وهابيانو کتاب دي :

اما صدقة المال فهي يصل ثوابها الى الميت باتفاق العلماء واجاب ايضاً الصدقة عن الميت من ماله الذي خلف حسن والصدقة المالية تصل الى الميت باتفاق اهل العلم .

ګوره دلته يې دا ويلي دي خو ددوي تفصيل ما کتلې دي دوي وايي چې دا صدقه الى الميت رسي خو من الولد من غير الولد نه رسي دا ټول ابن تيميه پسې ځي .

د حضرت جرير رضي الله عنه يو حديث دي او صحيح دي هغه دا چې :

كنا نعد الاجتماع الى الميت وصنيعة الطعام بعد دفنه من النياحة .

بعضې صنعة لفظ ذکر کوي لکه ابن ماجه او بعضې صنيعة لفظ ذکر کوي لکه مسند احمد .

مونږ به راغونډيدل د مړي په کور کې او جوړول د مړي کور والا لخوا دوډي خلکو ته دا به مونږ ګڼل د نياحة ممنوعه نه ددې ځای نه مخالفين د خيراتونو اخذ کوي او فقهاو هم

ډیرو کړې دي خو فقهاء رد په ضیافت باندې کړې دي په خیرات او صدقه یې نه دي کړي .
او دوي یې مطلقاً منعه کوي د فقهاء عبارات په دلیل کې پیش کوي نو دوي ته مونږ دا خبره کوو چې تاسو په حدیث د حضرت جریر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عاملین یې نو ټول په ټوله بیا عمل کوي.

حدیث د حضرت جریر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې باندې دال دي چې : كنا نعد الاجتماع من النياحة ، مونږ د مړي کور کې راغوندیدل هم نیاحة ګنلو او کوم وهابي او اشاعتي دي چې مړي باندې په کور کې خلک نه راغونديږي پیدا به کړي داسې د وهابیانو مړي او د اشاعتیانو مړي یا خو به سم د معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ متبع د سنت شه بیا به دې مونږ تسلیم کړو .

د یرموک په غزوه کې د مابنام لمانځه ته لږ وخت پاتې وه د غروب په وخت یې څوي شهید شو زخمي شوې مخکې وه نو هغه خو دشته وه او د مانځه لپاره یې ځای جوړ کړې وه خلک هلته ور ووتل او صحابه هم ډیر زیات وه تابعین هم وه تقریبا ۴۰۰۰۰، ۴۲۰۰۰ کسان زیات او کم وه دا خو چې یوه جمعه کوي پوره اجتماع ده نو چې دا خلک ووتل ده له خان سره څو غلامان او څو ملګري کړل او سمدستي یې څوي ته کفن او غسل ورکړو قبر یې هم وکنسته او دفن یې کړو هغه صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ چې د مابنام لمونځ خلاص کړو نفلونه تر څو کیدل چې بیرته راتلل جنازه هم ختمه ده او سړي هم دفن شوې دي .

نو حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل چې ولې دې داسې کار وکړو دومره صبر خو به دې کړې وه چې مونږ در سره جنازه کړې وای نو حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وایي چې ما ته نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا بنودنه نه ده کړې چې زه دې مړې ایسار کړمه ما ته یې ویلي جلتي به کوي په څو کارونو باندې یو د هغې نه جیني چې پیغله شي یو د هغې نه مړي چې وشي بس ما پرې جلتي وکړه دا جلتي مستحبه ده نو د استحباب لپاره یې هلته جمعه ولاړه ده هغې ته یې هم صبر ونه کړو .

كنا نعد الاجتماع حدیث د حضرت جریر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کې اول منعه د اجتماع راغلې چې کوم وهابي اشاعتي یا د احنافو نه څوک دي خیراتونو ته ناروا وایي او مرداریې وایي زمونږ ډیر حنفیان یې هم وایي نو دغه خلکو په خاندان کې چې مړي وشي چې دده په کور کې اجتماع وي نو دې ناست وي کنه ټول راغونډ وي غرا وپش جوړ وي او خلکو ته معلومه وي چې دلته مړې شوې دي .

په دې کې عربان بنه دي ما ځلور میاشتې په جدة کې تیرې کړې پنځلس (۱۵) عربان به راتلل ما ورته ریاض الصالحین شروع کړې وه درس مې ورته کوه ما هلته، مړي ونه لیدو نو ما هغوي ته وویل چې تاسو مړه کیږي نه که څنګه دلته خو ما د مړي یا جنازې خبر وانه وریدو وایي ولې نه دې ناستو کې یوه کس ته اشاره یې وکړه وایي دده تره مړ شو ما ورته وویل چې مونږ خو خبر هم نه شو دا څنګه مړي وه.

وایي نه چې دلته مړي وشي مونږ شرطې ته تیلیفون وکړو چې دلته مړې شوې دي هغوي راشي مونږ نه یې اوچت کړي نو چې د مړي نزدې خپلوان وي همدردي ورسره ولري نو کور نه یو کس لاړ شي غسل او کفن هم شرطې والا ورکوي بیا دا وړو حرم شریف ته نو دا قریب خپلوان او دوستان یې حرم پورې لاړ شي ورسره جنازه کې ورسره شرکت وکړي نور عام مونږ حرم ته او جنازې ته هم نه ځو ورسره مړي هغوي ته وسپارو بیا مونږ ته معلومه نه وي چې چیرته یې خښوي او چیرته یې وړي.

نو یو خوا خویې په یوه جزیه عمل وکړو چې: نعد الاجتماع من النياحة، خو بل طرف ته ډیر غټ نقصان دا راغي چې تا ته د خپل پلار قبر نه وي معلوم.

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په زمانه کې خو به د مړو قبرونه معلوم وه حتی چې د یو صحابي په قبر کاڼي خښوي چې دا زمونږ د ورور نخښه شوه، که صبا څوک راځي دُعاء کوي خپله نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کال په کال اُحد ته تللو. بقیع غرقد ته به تللو دُعا ګانې به یې کولې نو تا خو د دُعا نه محروم کړو معلومه هم درته نه ده چې مړې دې څه شو دا خو د نجدي دور نه وروسته د مړو هر څه ختم کړه نجدي چې پرې راغې.

حدیث د حضرت جریر چې څوک تاسو ته پیش کوي هغه به دا دویمه تکړه د حدیث تاسو ته پیش کوي: اوله تکړه د حدیث نه پیش کوي او یا به درته د حدیث پښتو ترجمه کوي چې مونږ د مړي په کور کې ډوډې نیاحت ګڼلو دا به دلیل کې پیش کوي نو تاسو به ورته وایې چې دا حدیث ټول پیش کړه مونږ ته د حضرت جریر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث ټول پیش کړه نو د حضرت جریر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث کې اول په کې اجتماع منعه شوې ده: كنا نعد الاجتماع من النياحة. مونږ به اجتماع د مړي په کور کې نیاحت ګڼلو.

بیا ورکړه دې منکر ته قسم چې ستا د مړي اجتماع ستا په کور کې کیږي که نه چې خیرات

ته مکروه حرام او بدعت وايي هغه تا چې اجتماع جوړه کړه هغه هم دغه حديث کې شته او اول هغه راغلې ده .

وصليعة الطعام . او صنع اهل د ميت طعام لره دا مونږ ګڼل د نياحت نه .

نو ددې دويمې تکړې جواب دادی چې دلته صنعة يا صنيعة الطعام راغلي دي نو يو ډوډې جوړول دي بل ډوډې خيرات کول دي دا په اصطلاح کې هم فرق لري مثلاً فلانکي ځای ته تللي و مه سخته ډوډي جوړه کړې وه نو دا الفاظ د ميلمستيا دي لفظ د صنعې نه معلوميږي جوړول د اهل د ميت طعام لره .

تصدق لفظ نه دی راغلي خيرات کې څوک صنعة الطعام نه وايي يو خيرات کې هم څوک نه وايي چې خيرات ته تللي و مه ډيره ښه ډوډي يې جوړه کړې وه اصطلاح داسې نه ده دا جوړول د ډوډې ګانو په ضيافاتو کې کيږي .

بل الفقهاء اعلم بمعاني الحديث . د حديث په معنی فقيه ښه پوهيږي ټولو فقهاء دي حديث نه ضيافت ته مکروه ويلي دي د را روان عبارات د فقهاء چې زه يې ذکر کوم دوي دا عبارتونه د خيرات په رد کې پيش کوي .

عون المعبود جلد ۸ صفحه ۴۰۶ همغه حديث يادوي : ويكره اتخاذ الضيافة من اهل الميت . مکروه دي جوړول د ضيافت او ميلمستيا د اهل د ميت نه .

لانه شُرِعَ في السرور لا في الشرور . ځکه ضيافتونه .

شُرع في السرور لا في الشرور وهي بدعة مستقبحة .

دا بد بدعت دي څه شي يادوي ضيافت ضيافت مونږ هم مکروه ګڼو دارنګې مرقات شرح د مشکوة جلد ۵ صفحه ۹۵۹ :

وقال يكره اتخاذ الضيافة من اهل الميت لأنه شرع في السرور لا في الشرور وهي بدعة مستقبحة .

دارنګې حاشيه رد المختار على الدر المختار جلد ۲ صفحه ۲۴۰ :

وقال ايضاً ويكره اتخاذ الضيافة من الطعام من اهل الميت لانه شرع في السرور .

دارنګې فتح القدیر لکمال بن الهمام جلد ۳ صفحه ۴۳۲ :

ویکره اتخاذ الضیافة من الطعام من اهل المیت لانه شرع في السرور لا في الشرور وهي بدعة مستقبحة .

داد فقهاو عبارتونه ما راخیستې دي چې دوي اطلاق د کراهیت چې کوي په ضیافت باندې کوي اوس لاندې ګوري شامي عبارت او د نورو فقهاو دارنګې مراقي الفلاح شرح نور الایضاح جلد ۱ صفحه ۴۱۰ دا پاس چې تیر شول هغه قیاس دي دا لاندې چې دي دا استحسان دي .

بل ذکر في البزازیة وان اتخذ طعاماً للفقراء کان حسناً .

که چا ونیوله روټې د فقیر لپاره کان حسناً دا بنه کار دي .

بل ذکر في الفتاوی الهندیة و في الخانیة وان اتخذ ولي المیت طعاماً للفقراء کان حسناً .

که ولي د میت ډوډې د فقیر لپاره وکړې دا ښه کار دي .

وان یکون في الورثة صغیر لم یتخذ ذلك من الترکة . که په ورثوو کې ماشوم وي .

فلا یتخذ ذلك من الترکة . بیا به داد ترکې نه ، نه اخذ کیږي .

بیا به یې دا وارث تبرع کښي نا روا بیا هم نه ده که چیرته په دې وارثانو کې صغیر وي نو دا خیرات ته د ترکې د مړي نه کوي که د خپل جیب نه یې کوي وارث ته دا ویل په کار دي که دې یې د خپل جیب نه کوي خو جائز شوه د صغیر دې کې څه کار نشته وارث خو خپلې پیسې خرچه کړي او که دې یې د ترکې نه کوي او صغیر هلته صاحب د اجازې نه دي نو دغه کبیر به دامني په زړه کې که صباغتې شي اوزه ده ته وو ایم چې ما خیرات کړې مور یا پلار یې مني یې .

که وي ویل چې منمه یې صحیح ده او که انکاریې وکړو نو دا کبیر به یې له خپل جیب نه لنډوي صغیر نه یې بیا نه شي اخیستې او دا لانجې ډیرې راځي مونږ ته راشي وایي ما پلار یې خیرات کړي دا یې ګوره نه مني خپله برخه نه راکوي نو چې نه یې مني نو خپله خو به یې ده چې مور یا پلار سره نیکي کوي او که نه یې کوي څه لازمه خو نه ده پرې .

نو فیصله دلته داده چې لانجه درته راغله دا کثر غټ شو یا کبیر ده خو مسافر ده بل ځای کې ده اکثر خلک یې نه خبروي ترکي ته شروع شي په خپل سر خیراتونه کوي نو که

چیرته هغه کبیر خبر شي او راشي او د میراث د تقسیم په وخت کې لانجه جوړه کړي چې زه د پلار خیرات نه منم نو دا چا چې کړې دده له برخې به کټ کیږي هغه صغیر یا له مسافر نه به نه کټ کیږي .

وان كان في الورثة صغير . مګر که وه په ورثوو کې صغیر .

لم يتخذ ذلك من التركة . دا صدقه چې کوي دا دې له ترکې نه را اخلي که یې را واخیسته کبیر به یې له خپل حق نه مني بیا .

دارنګې رد المختار جلد ٦ صفحه ٣٩۴ :

والحاصل ان اتخاذ الطعام عند قراءة القرآن .

ډوډي جوړول په وخت د ختم د قران کریم کې :

لأجل الأكل يكره . د اکل د پاره دا مکروه ده .

و فيها من كتاب الاستحسان وان اتخذ طعاماً للفقراء كان حسناً . که د فقیر لپاره یې ډوډي جوړه کړه دا حسن ده .

دا فقهاء دې ګوري هماغه ضیافت ته مکروه وایي هماغه ځای کې بیرته دا عبارت ذکر کوي :

وان اتخذ طعاماً للفقراء كان حسناً . البته که څوک وایي چې مال داریې بیا خوري څنګه دي .

دا قید د للفقراء احترازي نه دي دا اتفاقي واقع شوې دي یعنې خیرات وي او خیرات خلک د فقیر لپاره کوي ځکه چې دغه وخت کې دا صدقه صدقه یې نفیله ده نو زمونږ اصول دا فیصله کوي چې صدقه نفلیه کافر خوړې شي پاتې لا غني دي ، نو قید د للفقراء به احتراز دا غنیاو نه ، نه وي چې ګنې غني به یې نه خوري فقیر به یې خوري نه خیرات مراد ده او خیرات کیږي د غریب لپاره .

دارنګې البحر الرائق شرح کنز الدقائق جلد ۵ صفحه ۳۶۹ :

وفي الخانية : وان اتخذ ولي الميت طعاماً للفقراء كان حسناً اذا كانوا بالغين .

که غټ وه که واړه وه هلته د پردي حق امکان په کې راځي .

وإن كان في الورثة صغير لم يتخذ ذلك من التركة .

یا دې خیرات وکړي خو ترکې نه دې نه اخلي له خپل جیب نه دې یا خیرات وکړي اوس دا استحسان دي .

کوم ځای کې چې منعه راغلې ده هغه قیاس وي اوس د قیاس او استحسان معارضه چې فقه حنفي کې راشي .

المحیط البرهاني للامام برهان الدین ابن مازة جلد ۵ صفحه ۲۳۱ :

**ويترك القياس بالاستحسان** . څو مره چې زمونږ فقه کې قیاسات راشي او بیا استحسان راشي نو استحسان به په قیاس مقدم وي نو خلاصه دا شوه چې کوم فقیه په کې د ضیافت تکې نه ده ویلي او مطلقاً خیرات یې ناروا کړي لکه **الفقه على المذاهب الاربعة** ضیافت نه ده ویلي او ناروا کړي دي او بدعت کړې دي نو هغه استدلال د قیاساتو دي او چا چې جائز کړې ده دا استدلال د استحسان دي .

او استحسان په قیاس په فقه حنفي کې مقدم وي ترجیح به دې ته وي دا هغه عبارات فقهیه وه چې مخالفین ترې نه استدلال کوي او د هغې جوابونه چې هغه عبارت به تول کوري نو تاسو ته به معلومه شي چې فقهاء ضیافت مکروه ګڼي صدقه او خیرات مکروه نه ګڼي نو حدیث د حضرت جریر رضي الله عنه محمول شو عند الفقهاء په ضیافاتو باندې چې د مړي په کور کې ضیافتونه ناروا دي .نو دلته چې وهابي سره مباحثه کوي نو هغه اوله طریقه به اختیار کړي چې :**نعد الاجتماع من النياحة** . اجتماع ته ولې کوي او بل دا تپوس ترې وکړي چې خیرات څو ورځو پورې حرام دي هغه به وایي تر دریمې پورې نو تاسو به ورته وایي چې قید د ثلاثة ایام وبنایه .دا قید خو د حضرت جریر رضي الله عنه حدیث کې نشته دي مطلق د مړي کور کې ورکول د طعام غیر له **من النياحة** . او جواب به د لفظ د **صنعة الطعام** نه کوي چې جوړول د طعام دي او جوړولو د طعام ته ضیافت ویل کیږي **كما حققه الفقهاء** زمونږ فقهاء دا تصریح پر کړې ده .

## مسئله د ایصال الثواب للأموات ختمه شوه



بسم اللہ الرحمن الرحیم



# علماء احناف

# علماء حق

خادم عالمزیب الحنفی

+923452131285